(۴)  7/1968

۱۳۴۷
سرطان (۴)



## ددې ګڼې مضامین





دسلام خانی دوودانی ارخ ته : دمخابراتو د مدیریت پخوانی ودانی چی د خرقی شریفی د ودانی یوه برخه هم پکښی لیدل کیږی



د افغانستان بانك د ودانی منظره: چی په دې وختو کی په عصری ډول جوړه سوې ده



د کندهار والي دوکتور عبدالرحیم هغه‌وخت چې د احمدشاه بابا ، میرویس نیکه او زرغونې انا
د ښوونځیو فارغانو ته اطلاعنامې ورکوي دوینا په‌حال کې لیدل کیږي

کندهار

د ۱۳۴۷ لمریز کال د چنګاښ میاشت

# پوهنه که روزنه

داچې علم رڼا ده او موږ د هغه په پلوشو کې د ژوند ټولې کنډې کپرې وینو او یا داچې د مذهبي سنو نو

له مخې د علم زده کړه پر ټولو مسلمانانو نارینه دی که ښځې فرض دی، غرض مې دادی چې د علم او پوهنې

د لارې څخه انساني ذهن تذکیه او له نفسي مفاسدو څخه چې د حیواني غریزو له مخې د انسان سره همراه

دي وژغورل سو او په عوض کې هغه حسنه او حمیده ملکات چې د بشري کرامت او شرافت جز دي را او پارول

شي او بني آدم د موجوداتو د خلقت په ډګر کې هغه څه وګړي چې د بني نوع د شان او شوکت سره مناسب وي یعني د علم کسب او زده کړه منحیث العلم غایه نه ده بلکې یوه وسیله ده چې د انساني نفس د تذکی په غرض چې د هغه څخه مراد دیوه داسې

با تقوا او متدین انسان په وجود راوړل دی چې د ټولو اجتماعي ښېګڼو درلو ونکی وي او خپل ټول فردي وجایب او اجتماعي

فرایض هم ښه ترا پېژني او هم ښه ترا هغه پر خپل ځای او موقع

باندې ادا کړای سي که چېرې د علم او پوهې د زده کړې سره

تربیه او روزنه ملګري نه وي او فردي احساسات د وجدان تر الهام

لاندې حرکت ونه کړي فردي او اجتماعي فعالیتونه د عاطفي

محبت احترام څخه ترکیب سوي نه وي نو هغه بې لجامه آس

غوندې کېږي چې د بدبختي په کنده کې سقوط کوي او دا دري متل چې وایي:

علم اگر بر دل زند یاری شود
اگر بر سر زند ماری شود

نو اړ دي پاسني توضیحاتو په موجب د علم او پوهې د زده کړې سره باید روزنه او تربیه ملګري وي څو اصلي هدف چې اجتماعي

تقوا او فردي تدین دی منځ ته راسي او فرد د علم د زده کړې

په رڼا کې د خپل ټولني یو صالح او مفید غړی وي زموږ هیله

داده چې که تربیوي موسسات دي او یا فردي مربیون دي خواه

په کور کې وي یا په مدرسه کې د علم او پوهې د زده کړې ثقل

خپل هدف ته چې تربیه ده متوجه وي څو د علم او پوهې د زده کړې څخه اصلي مقصد چې دیوه با تقوا او متدین انسان په وجود راوړل دي په لاس راسي.

نو وختي چې تقوا او تدین په انسان کې وده وکړه معلومه خبره ده چې ددې اصل په اړخ کې به انسان د

ژوندانه پر ټولو اړخو لکه څنګه چې ښائي فایق سي او هره دنده چې دده پر غاړه ولوېږي په ډېره ښه توګه به هغه ترسره کولای شي.

که چېرې د تاریخ په ادوارو کې وکتل شي هغه

کړه وړه چې اوس ئې موږ وینو هغه ټوله د علم، پوهنې روزنې، تقوا، نفسي مفاسد

او حیواني غریزو تر عنوان لاندې راځي چې د اهریو په معنا کې اوړل، اوړل کړه وړه لري چې د ښو څخه ئې خالق

پند او خوندا خلی او د بدو څخه ئې د عبرت درس نو ځکه موږ اړه په کار ده چې هغه لاره ځانته غوره کړو

چې د خدای [ج] او خلکو په هغه کې رضائیت وي څو د ټولني د خوښۍ موجب وګرزي.

لیکونکی: م [عطائی]

# پر شعر یو تحلیلی نظر

[جان ملټن] د انګلستان معروف لیکوال ویلی دی چې هر شعر لاندې درې بنیادې ولري نو هغه شعر واقعي شعر دی (ساده او بسیط به وي) (د نفساني لذاتو پیروي به پکښې سوې وي)، او (آتش مزاجي به ولري.)

د ملټن دا چوکاټ د شعر په باره کې واقعاً نه حدود معلوم کړېدي او موږ کولای شو چې په مقایسوي ډول د شعرونو په باره کې خپل قضاوت پر معیاري کړو.

## لومړی اصل
## «سادګي او بسیط والی»

سادګي او بسیط والی په هرڅه کې واقعي ښکلا له پردې او پېچیده ګیو څخه راباسي نو ځکه مطلوب بلل شویدي.

شعر، چې یو ښکلی هنر دی نو که ساده ګي ونه لري کیفیت ئې په پرده کې پټ کېږي د مثال په ډول د قدیم یونان او روم په ادبیاتو کې په لومړي ځل کې ساده ګي وینو او بسیط والی ئې هم بدلئ خو دا وضع په هغه مهال کې چې د منځنیو پېړیو د کلیسا تر چپاول لاندې خپل رنګ بدلوي نو شعر د ساده ګي او بسیط والي څخه وزي مرموز کېږي او داسې مرکب ځیني جوړېږي چې غایه او هدف ئې د ذهني رکود ته منتج کېږي.

د رنسانس په دوره کې چې ادبیات د ملي ژبو په خپلواکي کې نوي رونق پیدا کوي نو شعر د یوې لنډې مدې لپاره ساده ګي او بسیط والي ته مایل کېږي خو د کلاسیک مکتب په سیطره کې بیا د غه ښکلا ځیني نیستي کېږي.

پدې پسې چې د جهان وضع د صنعتي انقلاب په څېړو کې پر اقتصادي او سیاسي محاذ بدله شوه او د فرانسي لوی انقلاب د فردي آزادي ډمامې خپرې کړې نو رمانتیزم مکتب د «ادبي لیبرالیزم» په عنوان د ادبي نړۍ پرچمدار شو او پدې منظور چې د انساني نړۍ هرڅه باید ساده او بسیط شي، نو شعر هم پدغه نهضت کې بېرته واخستله خو څرنګه چې د دې کار بنیاد پر تخیلي فلسفه ولاړ ؤ نو ورو ورو ئې زوال وموند.

مثلاً موږ د رومانتیزم د مکتب لوی شاعر [ویکتور-هوګو] په اشعارو کې یو مقدار ساده ګي او بسیط والي وینو خو کله چې روښ (او بت) د دغه مکتب ورو ورو ښاخو لکه سمبولیزم، سورریالیزم او نننۍ اګزستانسیالزم ته رسیږي نو شعر مطلق یو وحشي ماسك پر مخ غوړوي او نه یوازې ساده ګي او بسیط والي ځیني ځي بلکې له پېژندلو وزي.

د صنعتي انقلاب څخه ژر پېدلي جریانانو چې په دینامك ډول د اتلسمې پېړۍ د اواخرو او نولسمې پېړۍ د اوایلو اقتصادي او سیاسي بدلونونه پر ځان راتاوول نو په ټولنه کې یو نوي طبقاتي تصنیف آن په آن علني کېدی او د هغه څخه ژر پېدلي تضاد نوي پدیدې منځ ته راوړې چې په هغو کې د هنر نړۍ هم پر پخواني حال پاتې د ونکی نه وه د دغو تاریخي حالاتو په اوښتو کې هنري پدیده له یوه لوی انحراف سره مخامخ شوه چې هغه (هنر د هنر لپاره)

۲۷ مخ دی وکتل شي

د محمد اسماعیل [زاهل] ژباړه

# کندهار

## د تاریخ په مختلفو دورو کې

دا ښار دیوه ولایت پنامه هم یادیږي او د تاریخ په پاڼو کې ددې ښار د تأسیس قطعي نېټه نشته او هغه څه چې څرګندیږي هغه داده چې نوموړی ښار په پخوا زمانو کې یعنې د مخه تر اسلام جوړ سوی دی .

دې ولایت د تاریخ په مختلفو دورو کې د [هارانوتي - زمینداور اراکوزیا - اسکندریه - الرخج او په پای کې د کندهار] نوم پیدا کړی او ددغو نومو په پیدا کولو سره سم ئې څه ناڅه تاریخي موقعیت هم تغیر موندلی دی، خو ددغو ټولو تغیراتو سره بیا هم ددې ښار موقعیت د «ترنك او ارغنداو» د سیندو په مینځ کې ثابت او محقق دی .

ددې ولایت حدود د پېړیو په تېرېدلو سره لوی او ښکاره تغیرونه موندلی دی لکه چې د «هخامنشیانو» په دوره کې ئې د سیند له رود څخه بیا تر هندوکش پورې وسعت درلود، مګر د عربو د جغرافیائي پوهانو له څېړنو څخه داسې معلومیږي چې «الرخج» د کندهار په وادي پورې تړلی او د هغې هسته ئې تشکیلوله .

که څه هم دا ولایت په ۶ ق، م پېړه کې د «سیروس» په واسطه چې د هخامنشیانو له کورنۍ څخه و فتح سو یدی. مګر دې فتح عسکري ښه پوره نه ده څرګنده خو دومره ښکاره ده چې ددې ولایت نوم په هغه وخت کې «هارانوتي» و. دغه هارانوتي یعنې کندهار تر دوو پېړیو پورې د پارسیانو په لاس کې و څو چې په ۳۲۹ قبل المیلاد کې د اسکندر مقدوني له خوا فتح شو .

سکندر د اورګتیانو له هیواد څخه د شمال و خوا ته پر مخ ولاړی او اراکوزیا ته ورسېدی، لومړی ئې د درنج او ګوګې ددرې خلکه خپل تابع او ور وسته بیا اراکوزیا ته داخل شو . ده په اوسني کندهار کې یو نظامي کلا جوړه او د هغې نوم ئې «اراکهوزی» کېښېښوده .

ددې کلا دېوالونه د ۳۲۹ ق، م په دوبي کې ۹ پر ښه لوړ سوی او سکندر خپل د عسکري پلان سره سم څه عسکر د لته واچول دا نظامي کلا د کندهار جنوبي خوا ته پرته وه چې که د کندهار زوړ ښار او احمد شاهي ښار په نظر کې ونیول شي نو دغه کلا ددغو دوو ښارو سره یو مثلث شکل جوړوي.

سکندر له بومي خلکو څخه چې د اراکوتي پنامه یادېدله عسکر ونیول او [مه‌نن] نومی ئې ددې ځای والي مقرر کی .

سکندر د نوموړی کلا په جوړولو او په هغې کې د یو څه عسکرو د اچولو په واسطه دغه ولایت خپل د عسکري فعالیت مرکز وګر-ځاوه او لدغه ځایه څخه ئې خپل د فتوحاتو لپاره و

هری‌خواته وخغستل.

هو! دی لومړی [د نننی هرات] یا دهغه وخت «اریایی» ته ولاړ او دهغی سیمی بنوربنیان ئې له‌پښو واچول او هلته ئې کراری جوړه او بیرته کندهار ته راغی او لدغه ځایه څخه مخ پر کابل رهی سو.

ده دمخه تردې چې پر هند یرغل وکی «بلغ» ئې ونیاوه او له‌هغه‌ځایه څخه دهند لوری ته روان سو.

دسکندر ترمړینی‌وروسته دده دغه پراخه او ارته‌امپراطوری دده دجنرالانو په‌مینځ کی وویشل سوه، کندهار، کابل‌اوغزنی د «ستارسا نرو او سایبرتیوس» ته‌ورسېدل. ددې سیمی دادارې ددوام په هکله د یونانی امرانو له‌خوا د مؤرخینو (تاریخ لیکونکو) په

مینځ کی څه‌اختلاف‌دی ځکه ځینی مؤرخین‌وایی چی: دا سیمه تر دووپېړیو پوری دیونانیانو په‌لاس کی‌وه اوځینی نوردا‌سی‌عقیده څرګندوی چی‌فقط د څو کالو دپاره یونانی امیرانو په نوموړی سیمه کی امارت کاوه.

په «۲۳ق،م» پېړیه کی د باختری دولت اداره د «ایوتیدم» په لاس‌ورغله. نوموړی دیونانی امیرانو له‌ډلی څخه ؤ اود باختری دولت د اداری‌تقسیماتو په لړ کی‌د هندوکش په جنوب‌غربی سیمه کی ئې‌یونوی‌او بېل امارت‌جوړ کی،داچی له‌یوې‌خوا«اراکوزیا او درنجیانا» د هیواد له‌مرکز (باختر) څخه لیری‌وه او له‌بلی خوا د

هندوکش دلوی‌اوجګ‌غر په مینځ کی پروت ؤ،نود «ایوتیدم» دا فکر ډېر پوخ‌او‌اساسی ؤ هغه‌وو‌چی ده‌خپل بل‌زوی‌چی «میتریوس» نومېدی ډېر زړه‌ور، غښتلی او د تدبیر خاوند ؤ، لومړی د اراکوزی‌د والی په‌حیث اولږڅه‌وروسته‌ئې دهغه‌ځای‌امیر مقرر کی. نوموړی په کلکه دهیواد وچارو ته‌متوجه‌شو، دباختری‌دولت‌نفوذ ئې‌د اراکوزیا (آریانا) او درنجیانا په لیری سیمو کی ټینګ‌اود

خپل پلار په اجازه‌ئې و «جدروزیـا یعنی بلوچستان» او سند ته لښکرکښی وکړه او دغه‌سیمی چی اصلاً د آریانا په تاریخی‌ولایت پوری‌ئې اړه درلوده مګر پدغه‌وخت کی له اصلی چوکاټ څخه دباندی پاته‌وې ډېر ژر د باختری یونان په تاریخی‌دولت پوری ونښلولی اووروسته ترهغه ئې‌بیاد‌خپل هیواد و آبادی‌او سوکالی ته مخ راواړاوه او په‌اراکوزیا کی یولوی ښار جوړ کی چی ټولو کلاسیک‌مؤرخینو اوجغرافیه‌لیکونکو هغه ښار د «میترباس» په

نامه‌یاد کړیدی.

د ایوتیدم تـر مـړینې وروسته‌دده زوی اوجانشین دمیتریوس‌خپل دپلار کړن لاره تعقیب او د هند پـه ګټلون ئې ټولی مفتوحـه سیمی په ښه‌ډول‌اداره کړی داراکوزی‌اوسیستان‌امارت هم د ښخوا په شان دده په لاس کی پاته‌ؤ.

دې نوی پاچا لومړی خپل ورور «اپولودوت» د هغه‌ځای په امارت ګمارلی ؤ تر څـو‌چی خپل د هیواد د پراختیا نقشه ئې جوړه او شخصـاً پخپله و «تاکزیلا» ته ولاړ او خپل ورور اپولودوت ته ئې‌امر وکړ چی «جدروزیا» فتح او په تاکزیلا کی دده سره یو ځـای شی. دمیتریوس خپل‌ورور اپولودوت ئې په هند کی پرېښود او خپل مرکز ته راوګرزېـدی او خپل دریـم زوی «پانتالئون» ئې د سیستان‌او اراکوزی امیر مقرر کی.

له تاریخی څېړنو څخه داسی څرګندېږی چی کله کله ددې امارت سیمه ډېره پراخه‌او حتی تر بارو بامیزاد پوری رسېدله چی پایتخت به ئې کاپیسا ؤ.

لکه چې ځینو مؤرخینو دی پاروپامیزادی امیر او پایتخت ئې کاپیسا بللی دی.

د نوموړی امیر د امارت نېټه‌د ۱۹۰ق،م حدودو ته نسبت سوېده. که څه هم‌داچې آیا ددې ولایت‌اداره څه‌وخت له‌یونانیانو له‌لاسه ووتله او په‌کومه سلاله پوری ئې‌اړه پیداکړه ؟ دنوموړی ایالت‌دابتدائی تأسیس‌غوندی پوره‌اوپه‌قطعی ډول ښکاره‌او ثابته

نده خوسره دهغه‌هم څه‌چې د مؤرخینو اوڅېړونکو په‌نظرواقعیت اوحقیقت ته‌نژدې ښکاری‌هغه‌دادی‌چې ددې ولایت‌د ادارې انتقال په ۵۵ق،م کی سوی‌او په‌بله‌کورنۍ پوری ئې‌اړه‌نیولی ده دمؤرخینو له‌تحقیق‌اوڅېړنی څخه داسی ښکاریږی چې ددې ولایت اداره د

«اګستوس» په‌زمانه کی‌د «ساکاوپهلوا» دامیرانو له‌خوا کېدله چې نوموړی امیران د پارتی قبیلو څخه شمېرل کیږی . وروسته‌تر هغه‌دغه ولایت دمختلفوامیرانو په‌لاس کښېوتلی اواداره سویدی چې د ساکا، پهلوا، کوشانیانو، او یفتلیانو په‌قبیلو پوری ئې اړه درلوده .

کوشانیانو یولوی‌اوستر سلطنت‌جوړ کی‌چې ننني‌افغانستان اوډهند څه برخه پکښې شامله‌وه، پدې سلطنت کی‌له پارسی،هندی، هلنستیکی او رومی تمدن څخه یوګډ اوتهذیب تمدن‌جوړ سوی‌ؤ چې له هره‌حیثه دلیدلو اوکتلو وړ او ډېرجالب ؤ پدې وخت کی دې سیمی ډېر پرمختګ کړی‌ؤ، ځرنګه‌چې ددې‌سیمی سلطنت‌ډېر لوی اومختلفو عناصرو واک پکښې درلود نوځکه کله، کله به ددوی په‌مینځ کی جګړې او شخړی‌هم پېښېدلی .

په‌۲۲۵میلادی کال کی «لومړی‌اردشیر» چې دساسانی کورنی له پاچاهانو څخه دی، اودریمی پېړی په دوهمه نمیائی برخه کی لومړی شاپور او په څلورمه پېړې کی دوهم‌شاپور دکندهار د سیمی امنیت اوآرامی له‌مینځه یووړه، پدې ډول چې ددې‌سیمی

مغولی پاچاهی په ځینوسوغاتو او دوستانه وعدو غولولی اود مغولی امپراطوری‌ه دداخلی بی انتظامۍ او ګډوډۍ څخه ئې‌استفاده وکړه اوپه ۱۶۲۱م کال کی‌ئې د کندهار ولایت محاصره او یو کال وروسته په ۱۶۲۲م کال د جون په میاشت کی‌ئې فتح کی . که څه‌هم جهانګیرپاچا ددې‌سیمی دنیولو دپاره ښه‌پوره احضارات‌نیولی وه‌مګر په‌زړه‌پوری اومثبته نتیجه ئې‌ونکړه اود جهانګیر پدې ناکامی کی ده‌زوی «شاه‌جهان» چې ددې کاروائی او مسئولیت

وده ته سپارل سوی‌ؤ لویه برخه‌لری .

دشاهجهان‌دحکمروائی په‌وخت کی‌د مغولی امپرا-طوری‌موقف په شمال‌غربی

خوا کی څه خراب او د اندېښنې‌وړ ښکاره‌شو،شاه جهان ددې نقیصی‌د لیری کولودپاره داسی‌عزم‌وکی

چې‌د کندهار سیمه په هره وسیله چې‌وی بـاید خپل لاس ته راولی، نو هغه‌وو چې شاهجهـان خپل پـه

ماهرانه‌وعدو او دوستانه لیکونو د کندهار د هغه وخت ایرانـی والی چې علی‌مـرادخـان نـوم‌ېدی

وغولاوه او هغه ئې د شاه عبـاس و بېوفـائی او د کندهـار و تسلیمولـو ته

تحریک‌اوتشویق کی. علی-مرادخـان د مغولی پاچا بیعت‌ومانه اوخپل‌ددې کار

په‌عوض کی‌دمغولی‌حکومت له‌خوا په ډېرو پیسو اوښه عزت ونمانځل شو ، پدې توګه د کندهـار ولایت د

صفوی حکومت له منګولو خلاص‌اوپه مغولی امپرا-طوری‌پوری وتړل شو مګر مغولیانو تر ډېـره وخته پوری‌داسیمه پخپل‌واک کی

ونه ساتلی سوای ځکه چی صفویانو د دوهم شاه عباس په عین ژمی او یخنی ۱۶۶۸م کال داګست په میاشت کی د کندهار دنیولو دپاره ښه مکمل احضارات ونیول او پدې فکر کی وه چی واوره، باران اود هوا سوړوالی حتماً د مغولی حکومت د لښکرو کاروبار او له

هندوستان څخه راتګ ګران ؤ. دشاهجهان د دربار خلګو دصفوی حکومت ددې پلان خطر څه ناڅه احساس کاوه او له شاهجهان څخه ئې غوښتل چی د صفوی حکومت سره خپل مخالفت او مقابله د ژمی او سړو تر تېر پدلو پوری وځنډوی.

هو! ددربار یانو دې تنبلی او غفلت خپله طبیعی نتیجه ورکړه، دصفویانو پاچا سره ددې چی لښکر ئې لږ او احضارات ئې نیمګړی وه د دسمبر د میاشتی په ۱۶ نېټه په ۱۶۴۸ کال کی کندهار محاصره او په پای کی د ۱۶۴۹م کال دفبروری په ۱۱ نېټه دشاهجهان

لښکر وته ماته ورکړه او مغولی حکومت ئې ځانته تسلیم کړ. داهم باید وویل شی چی پدې ماته او مغلوبیت کی دکندهار د والی بی کفایتی اوغفلت ډېره اغیزه درلوده.

د۱۶۴۸ کال دمی په میاشت کی شاهجهان خپل زوی «اورنګ-زیب» خپل د صدراعظم سعدالله خان په ملګرتیا د کندهار دنیولو دپاره مؤظف کړ. اورنګزیب دهغی میاشتی په۱۶ پر کندهار حمله وکړه، څرنګه چی صفویانو د اورنګزیب ددې حملی په مقابل کی

پوره احضارات نیولی او ښه مهارت درلود نو ځکه د اورنګزیب دا حمله پرشا ووهل شوه. شاهجهان سره ددغی ناکامی بیاهم د کندهار دنیولو له نقشی څخه لاس وانخیست او وروسته تر ۳ کلو احضاراتو ئې بیا اورنګزیب او سعدالله خان د کندهار په نیولو

وګمارل او پخپله شاهجهان د انتظام او اکمالاتو په غرض په کابل کی پاته شو. اورنګزیب د۱۶۵۲ کال دمی په ۲ نېټه کندهار محاصره کړ، که څه هم شاهجهان په ټینګه امر ورته وکړ چی ترڅو د کندهار دښار په دېوال کی کومه لار او نخره پیدا نشی باید له حملی کولو

څخه ځان وژغوری، مګر شاهزاده خپل د پلار د امر او سپارښت په خلاف خپل په هغولږو توپکو سره پر ښار حمله وکړه اود ایرانیانو دغښتلو اوقوی تو پو له خوا ئې حمله شنډه او بی نتیجی پاته شوه او پدې ډول داپلاهم مغولی لښکر خپلې هیلی ته ونه رسېدی او شاهجهان دمحاصرې دمتار کی امر صادر کړ.

دریم ځل بیا د کندهار د نیولو او په لاس راوړلو دپاره دشاهجهان مشر زوی «داراشکوه» کوښښ وکړ مګر ده هم څه ونه کولای

شول او ناکامه شو، پدې ډول د کندهار ولایت بر سېره پر هغه ټولو نغدی لګښتونو چی تقریباً ۴ کروړو هندی

روپیوته رسېدلی یا په بل عبارت د کندهار د سیمی دعایداتو نیمائی برخه ئې تشکیلوله د ډېرو انسانی

ضایعاتو سره یو ځای د مغولی حکومت څخه بېل او د صفوی حکومت په لاس ورغی.

د مغولی امپراطوری څخه د کندهار اوشمال غربی ولایت جلا کېدل او دمغولی حکومت پر له پسی ناکامی

له یوې خوا د نوموړی امپراطوری د جهان کشائی او ښی اداري لمن ور لنډه کړه اوله بلی خوائی نورو مفتوحه

ولایاتو ته هم موقع ورکړه چی تر ډېره وخته پوری دمغولی امپراطوری تر تاثیر لاندی پاته نشی خصوصاً دمغولی

امپراطوری په آخرو وختو کی دهند شمال غربی ایالاتو جلا کېدل او له لاس څخه وتل

د نوموړی أمپراطورۍ په خرابۍ کی لویه برخه درلودل او په عین حال کی صفویانو ته موقع او جرأت ورکړ چی د مغولی امپراطورۍ په مقابل کی ودرېږی او تر یوه حده پوری د هغی پر مفتوحه سیمو باندی تېری وکړی، نو لدې سبب د کندهار ولایت له ۱۶۴۸ څخه تر

۱۷۰۶م پوری د صفویانو له خوا اداره کېدی. تر څو چی د هغه کال په پای کی غلزائیان (غلجیان) د کندهار و والی ته پورته سول او په ۱۷۰۶م کی میرویس خان د صفویانو د والی (گرگین) په مقابل کی د خپلوا کیٔ غوښتلو د نهضت مشر توب په غاړه واخیستی. میرویس خان

د کندهار والی مړ او صفوی لښکر ئې له کندهار څخه وایستل او دغه ولایت ئې د خپلواکی سیمی په ډول پخپل لاس کی ونیوی، دې بری او فتح د پښتنو د خپلواکیٔ غوښتلو د مینی اور ته لمن ووهله او پښتانه ئې یو وار بیا وملی جگړې او پښتنی فتوحاتو ته ولمسول.

هغه وخت چی شاه حسین صفوی لدې پېښی څخه خبر شو خسروخان ئې د ۳۱ زره کسیز لښکر په قوماندانۍ په ۱۷۱۳م کال کی د کندهار سیمی ته راولېږیٔ.

کوم وخت چی میرویس خان د صفوی لښکر د رأ استولو څخه خبر شو، نو په لازمو دفاعی چارو ئې پیل وکړ او د «جنگ افغان و پارس» د مؤلف په قول میرویس خان تقریباً دوه کاله په دفاعی چارو او ترتیباتو بوخت ؤ. د ښار اکثره او سېدونکی لکه زاړه او سپین سری

کوچنیان او نجونی ئې د غرو و لوړو او پټو ځایو ته واستول، د سپرو لښکر و یوه ډېره برخه ئې د «داؤد خان هوتك» سپه سالار په مشری د فراه و دروته واستول څو د خسروخان سره جگړه او مدافعه وکړی او پخپله میرویس خان د خپل پلی لښکر سره د هلمند د سیند پر غاړه د بست په خرابو کی د خسروخان د راتگ انتظار کښل.

یو مشهور مؤرخ [میلسن] داسی لیکی: «که څه هم د پښتنو سپاهیانو شمېر ډېر لږ او د خسروخان د لښکر لسمه برخه هم نه کېدله مگر خپل د لومړنیو فتوحاتو او بری نشی داسی مست کړي وه چی په ډېره خوښی او زړه ورتیا د ۳۱،۴۰۰ کسیز لښکر سره د جگړې ډگر ته ورننوتل».

د میرویس خان او داؤد خان سره د خسروخان د جنگ بشپوره تفصیل ندی معلوم صرف دومره لیکل سویدی چی خسروخان پلې پر شدت پرغل راوړ او وې کولای شول چی د هلمند له سیند څخه تېر

او د کندهار و سیمی ته ځان راورسوی او پدې ډول ئې ښار کلابند کړ.

که څه هم پارسیانو د ښار د کلابندیٔ د خلاصولو او پرانیستلو د پاره ډېری لاری چاری ولټولی مگر

په پای کی خسروخان او لښکر ئې کاختیٔ او لوږی وارخطا کړل او دغه شی د میرویس خان او د ده د ملگرو د بری او غلبې سبب شو.

ځکه چی کلابند سوی خلگو نور هم خپلی مقابلی او مدافعی ته ځگروړ کړ، د همت ملاوی ئې وتړلی او د

زړه ورتیا غټ، غټ گامونه ئې واخیستل او پخپلو څو پرله پسی حملو ئې د دښمن وشاته کښېښناوه او د میرویس

په جذابو او اغیزه ناکو نصیحتونو ئې روحی قوت او زړه ورتیا تر دې اندازې ورسېدل چی د سر په ورکولو؟

په ئې و یاړل او د دښمن سره په ئې مقابله او جگړه کوله که څه هم خسروخان ډېر کوښښ وکړ چی د پښتنو په

مینځ کی د نفاق او رولگوی او د دوی له بی اتفاقیٔ څخه گټه واخلی خو کامیابه نشو په پای کی د خسروخان او

دده دملګرو روحيات ډېر ضعيف او نا اميده شول ځکه دښار له دباندې څخه ميرويس خان سختې حملې او يرغلونه پر کول، دښار دننه خلکو هم ځانونه د ډبرو په شان کلک ټينګ کړي او کلکه مدافعه ئې کوله، پردې واړو دژمي ساړه هوا او دخوراکي موادو نشته والي

خسروخان له پښو اچولى او له نا اميدۍ سره ئې مخامخ کړى ؤ، ځکه چې ميرويس خان دمواصلاتو ټولې لارې نيولې او بند کړې وې. خسرو خان بله چاره ونکړه پيدا دښار له کلابندۍ څخه ئې لاس واخيست او دخپل نيمګړي لښکر سره مخ پر اصفهان وتښتېده مګر پدې تښتېدلو

هم د پښتنو له منګولو څخه خلاص نشو او ميرويس خان دى ئې پخپل ۱۶ زرو مجاهدينو تعقيب کړ چې په نتيجه کې خسروخان دخپل ټول لښکر سره ووژل شو او د ۳۱۳۰۰ نفرو څخه چې د کندهار دنيولو دپاره له پارس څخه راغلي وه يوازې ۵۰۰ تنو په ډېر مهارت او خواريو ځانونه ژوندي ورسول.

دوه کاله وروسته صفوي حکومت بيا يو لوى لښکر د «محمد رستم خان» په قومانده د کندهار وسيمې ته راواستاوه مګر د ميرويس خان د غښتلي متې تاب ئې رانه وړ او نا اميده پاته شو ددې دپاره چې د خسروخان په سرنوشت اخته نشي په ډېره بېړه له پښتني خاورې څخه ووت او اصفهان ته وتښتېده.

پدې ډول ميرويس خان پښتانه چې د ډېر وخت څخه دخپلواکۍ تږي وو دخپلواکۍ او خوداراديت په خوږو ملو او به مست او نشه کړل او دا ابدي افتخار ئې ځانته وګاټه مګر افسوس چې ددې ملي قهرمان سره ژوندانه وفا ونه کړه او وروسته تر ۹ کالو مشرتوب په ډېره سرلوړۍ او افتخار په ۱۱۲۷ هـ يا ۱۷۱۵ م کال کې ئې لدې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

د ميرويس خان تر مړينې وروسته ئې ورور «عبدالعزيز خان» پر ځاى کښېناست. او دده په دوره کې کومه مهمه واقعه پېښه نشوه او دى هم ژر مړشو چې دده تر مړينې وروسته د کندهار دولايت واګې د ميرويس خان دمشر زوى «شاه محمود» په لاس ورغې. دې نوميالي

پاچا و کولاى شول چې د پښتنو د حکومت تسلط د صفوي امپراطورۍ پر زړه باندې قايم کړي خو دا د پښتني دنيا ځلانده ستورى هم په ۱۷۲۵ م کې له دنيا څخه سترګې پټې کړې او دده زوى «اشرف خان» ئې پر ځاى کښېنستى او دسرکښانو په آرامولو ئې پيل وکړ او دخپلو تېرشوو مېړنو په شان ئې خپله د امارت دوره په پوره دبدبه او عظمت

تېره کړه مګر په پاى کې د پښتني امپراطورۍ ځلانده لمر مخ پر لوېدو او کرار کرار ئې د صفوي امپراطورۍ له زړه څخه پښتني

منګولې ووتلې او ددې کار علت دا ؤ چې «طهماسب» د شاه حسين صفوي زوى له «نادر» سره چې يو زړور او جنګي سړى ؤ لاس يو کړ او يو دبل په اتفاق او مرسته ئې شاه اشرف ته ماته ورکړه.

دې ماتې پر پښتني عسکرو يو ډول بده اغېزه وکړه او هرڅومره چې ئې کوښښ وکړ چې د ماتې مخ ونيسي بريالي نشول او په پاى کې

په ۱۷۳۰ م کال کې پخپله شاه اشرف د «لوت» په دښت کې د يوه نفر له خوا چې «سردار بهلولي» نومېده ووژل شو. د شاه اشرف په وژلو سره د پارس پر حکومت باندې د پښتني امپراطورۍ واک او تسلط بالکل پاى ته ورسېده او د نادر د فتوحاتو او جهانګيرۍ دپاره زمينه ښه مساعده شوه.

وروسته تر هغه چې نادر د حکومت واګې په لاس کې ونيولې له داخلي او سرحدي شورښو او پېښو څخه ئې ځان خلاص کړ.

«نور بيا»

محمدولی [زلمی]

# ادب

ادب یو پراخه کلمه ده چې نن د دنیا په ټوله مواردو کې استعمالېدلی شي اود انساني ژوند په تحول او نهضت کې مهم رول لوبوي هره لیکنه چې په هر موضوع کې کېږي که د ادبي لحاظه ضعیفه اولیري وي هیڅ خوند څوک نشي ځنې اخستلای او ډېر ځله په لیکونو کې لکه په خوږو کې د مالګې داسې حیثیت لري.

د کومه وخته څخه چې انسان د ځمکې پرسر پیدا سوی دی ادب او ادبیات سم ورسره راغلي دي اوهرڅومره چې انساني ژوند تکامل او تحول کړیدی ادب هم په هغه اندازه ورسره متکامل اومتحول شویدی، مثلا مترقي اومدني قومونو ادب هم هغومره مترقي اوپراخ اوسېږي په نهائي ډول د یوې کلمې د معنی اومفهوم څخه استفاده کولی شي.

دادب د کلمې په معنی او ریښه کې تراوسه مختلف نظریات شته، دادبیاتو د کتاب مؤلف ښاغلی [اشنا] لیکي: چې بعضې دغه کلمه اصلا عربي ګڼي چې ریښه ئې په سامي ژبو کې پلټي او بعضې «ادب» آریائي کلمه بولي چې په عربي کې دخیله سوې ده.

[نلینو] ایټالوي مستشرق داسې خیال کوي چې د «ادب» کلمه په نوي معنی له «آدب» څخه اخستل سوې ده چې هغه د «ادب» جمع او معنی ئې خوي ده نه د «ادب» څخه څرنګه چې بئر (څاه)، او رئم (هوس) جمع شي آبار او آرام جوړ کړیدي دغه ډول «دآب» ئې هم دیوه حرف جمع کړیدی اوهغه وخت چې ددغې جملې استعمال په عربو کې ډېر سویدی نو ئې دهغې اصلي مفرد چې «دآب» دی هېر کړی او «ادب» ئې تصور کړی دی ځکه نو وروسته «دآب» پرځای «ادب» منځ ته راغلی دی اود پخواني معنی پرځای ئې یوه نوې معنی پیدا کړېده.

[مصطفی صادق او جبر سنویط] چې د مصر او سوریې د معروفو لیکوالو څخه دي دواړو انتاس نظریه رده کړې او دلایل ئې ویلي دي چې د «ادب» کلمه د پوهنې او فرهنګ په معنی د عربي په ژبه کې د جاهلیت په وخت کې مستعمله وه

او د سامي په نورو ژبو کې لکه «عبري» هم ریښه لري چې په احادیثو او تورات کې هم نه ده لیدل سوې اود «هذب تهذیبا» د کلمو مشابه ئې بللې ده.

ډاکټر حسین وایي: چې د [نلینو] نظریه فرض او خیالي اساس لري، د عربو د جاهلیت د دورې څخه داسې عبارت پاته ندی چې دا کلمه پکښې ذکر سوې وي او نه دا په قرآن شریف کې وارده سوېده، یوازنی ځای چې دا پکښې راغلې دی هغه دا حدیث شریف دی:

« ادبني ربي فاحسن تادیبي »

خو هلته داسې یو قاطع دلیل نشته چې دا کلمه د حضرت نبي [ص] څخه په خبرو کې یاده سوېده.

[انتاس] وایي که څه هم زما نظریه د ادب د کلمې د ریښې او منشا په شاوخوا کې بنا ئې د ټولو لغویانو او مستشرقینو له نظریو څخه مخالفه وي خو بیا هم وایم چې د «ادب» او «ادیب» کلمې عربي ندي بلکې د یوناني ژبې څخه عربي ته داخلې شوې او ادب د یوناني کلمې اودوپاس Eduepes څخه اخستل سوېده چې دا کلمه

هم د « Edus » (ښه) او « Epes » (خبرې) څخه مرکبه ده چې د دواړو مفهوم ښه خبرې کوونکې کېږي ·

یعقوب حروف وایي: چې د «ادب» کلمه د «ایدوماس Edomas» یوناني کلمې څخه مشتقه ده چې معنی ئې «خوږل» دی ·

[خفاجی] احمد د یوولسمې پېړۍ مدقق د «ادب» کلمه د عربي په ژبه کې دخیله کلمه بولي او وایي: چې د عربو په ابتدا کې د « ادب » د کلمې څخه د « ښه خوی او ښه کولو » معنی اخستل، مګر د اسلام تر ظهور وروسته خلکو «ادیب» د شاعر دپاره او «ادب» ئې عربي علوموته وضع کې ·

د ایران د ادبیاتو په تاریخ کې چې د همایي تصنیف دی وایي: «الادب محرکته بمعنی الظرف وحسن التناول» ·

فریدوجدي پخپل دائرة المعارف کې د ادب د کلمې لغوي معنی داسې کوي: ادب د ظرف په معنی و «ښو» اخلاقو زیرکې خوشنمائي څخه یو ه مرکبه وضع ده په دسیط کې د ادب د کلمې داسې معنی سوېده:

هر ښه ریاضیت (مشق او تکرار) چې یو انسان په ښو فضایلو آراسته کړي او د دغه کتاب په حاشیه کې راوړه سوېدی چې دغه تعریف د « ابوزید الانصاري » دی ·

په جواهر الادب کې راغلي دي چې ادب د یو علم نوم دی چې په هغه کې د ښې وینا طرزونه بیانېږي ·

د سیط وایي: د یوې ژبې د هغې ژبې د نظم او نثر څخه عبارت دی چې د ژبو او د عقلونو د طبایعو د ډولونو مختلفو خیالاتو او ادبیاتو، د پیمانو او نورو هغوشیانو چې د نفس د تهذیت او د عقل د قوت سبب کېږي بیان کوي ·*

همدا شانې په عربي ادبیاتو کې د Literature کلمه د Erslett څخه مشتقه ده چې د حرف معنی ورکوي او د لیټرز لفظ پخپله د لټریچر په معنی هم استعمالیږي لکه پدې عبارت کې Aman of litter ګرده هغه څه چې لیکل سوی وي یا چاپ سوي

وي لیټریچر نه ورته ویل کیږي ځکه د لټریچر نوم یوازې هغه قابل یاداشت افکار وته ویل کیږي چې په عالي ډول سره په الفاظو کې ځای کړه سوي وي، دا د بهترین سبک کار دی چې

کومې لیکنې ته د لیټریچر حیثیت ورکوي د عنوان په جمله کې چې اسرار « قویلر لوچ » ویلي دي د لټریچر لفظ ئې د لیکنې په معنی استعمال کړیدی ·

دی وایي : ښه لټریچر هغه دی چې مطالعه کړه شي ، بلکې همدارنګه د یو فن په حیث ئې استعمال وشي ·

لیکنه یو فن دی او صرف پدې سبب چې دا یو فن دی نو زده کړه هم غواړي هر فن د خپل اظهار د پاره خپله وسله او د خپل ځانه اصول لري مجسمه جوړوونکې په ډبرو او فلزاتو کې کار کوي موسیقي والا د صاف آواز په ایجاد کې کار کوي اما د لیکوونکې کار د الفاظو سره دی نو لکه دا نور فن والاو ته چې عملي زده کړه پخپل فن کې ضروري ده او باید پر له پسې استعمال ئې وکې

څو چې وکړای شي · دې پخپلو فنونو کې خپل مافي الضمیر په مجسمه رسم موزیك کې په مناسب ډول سره په اظهار ورسوي ·

دغه رنګه د لټریچر جوړوونکې یعنې لیکوونکې ته دا په کار ده چې د خپل فن علمې اړخ زده کړي

د خبرو او لیکلو اساس مقید او د وجود دلیل ئې مفاهمه او مخابره ده ·

* نور په ۲۸ مخ کې

# د تاریخ نه پخوا زمانو کی

## بشر په هغه دوره کی انسانان څه بلل کېدل

# او څرنګه تکامل ئې کړیدی

ټولو ته معلومه ده د مسیح د میلاد نه پخوا په ۳۳۰۰ کال کی خط پیداشو او بشر وکړای شول چې د خپلې زمانی پېښې او واقعات په خطونو لکه هیروغلیف شکلی او نورو سره ولیکی .

د پېښو تاریخ د دې دورې نه وروسته نسبتاً روښانه دی، مګر د دې نه پخوا تمدن د هغوی د قبرونو د کیندلو او ښارونو په واسطه معلومیږی او موږ د هغوی د ژوندانه سره آشنا کوی .

د دې دورې نه پخوا یعنی د نن ورځې نه د سل زره کال پخوا تاریخ ډېر تیت وپرک او مبهم دی ځکه چې بېله ډبرینو شیانو او یا پر تېرو باندې د تصویرونو نه علاوه د هغوی څخه نور شیان لاس ته نه دی راغلی او که چیری کیندنی او حفریات لا پسې ژور کړه نو ئې د تېر شوو هډوکو څخه نور څه لاس ته نه راځی چې د دغو هډوکو یو ځای کولو څخه په شکل د هغه وخت د انسان د اسکلت ساختمان برابریږی او له هغه څخه داسې معلومیږی چې د هغه وخت انسان به په شا کړوپ، کړوپ په لاره تلی ځکه چې د هغوی د پښو د پنډیو هډوکی اود سر د کوپړې ظاهری قفوی ثقبې د نن ورځې د انسانانو څخه فرق درلود ، یعنی ظاهره قفوی ثقبه د ننني انسانانو په نسبت د هغوی د سر په کوپړې کی لوړه واقع وه .

هغه پخوانی اسکلت چې د تی لرونکو حیوانانو څخه لاس ته راغلی دی د «کراید» په دورې پورې اړه لری چې تر نن شپاړلس میلیونه کاله پخوا موجود ؤ او له دغې زمانې نه راوروسته په مځکه باندې د تی لرونکو حیوانانو حاکمیت ثابتیږی .

په همدغه زمانه کی ؤ چې انسانانو دونو په ښاخونو کی استوګنه کوله .

د ۱۲-۱۵ میلیونو کلونو نه پخوا انسانان بریالی شول چې په نېغ قد پر لار ولاړ او په آزادو لاسونو شیان ونیسی ، هغه انسان د «پروکونسول» او «دربو پیتیکوس» په نومو یادېدل .

۳-۴ میلیونه کاله پخوا انسانان د «پرومته اوس» او «اولترالوپتیکوس» په نومو یادېدل، چې دماغ ئې د هغه وخت د نورو مخلوقاتو په نسبت ډېر انکشاف کړی وو .

مګر د آلاتو او اسبابو نو د جوړولو څخه عاجز ؤ لدې جهته دوی «فورمنش» یا ډېر ابتدائی انسانان بلل کېدل ، لدې دورې نه وروسته هغو انسانانو ژوند کاوه چې په غارونو کی به اوسېدل او د «ایشت منش» پنامه او یا د حقیقی انسان پنامه یادیږی .

دوی داور او ښکار په ایجاد موفق شول ځکه چې ددوی په غاروکی په سکرو

سره رسمونه اود حیواناتو ښکار سوی هـلېو کی او د ښکار ځینی ډېـرین آلات لیدل شوی دی .

« نیادرتـالر» نومـی انسانانو چی ۲۰۰زره کاله پخوا ئې ژوند کاوه له اور ځخه ډېری استفادې کولی او د « اورمنش» پناه یا ابتدائی انسانان یاد او بلل شوی دی، دوی دحیواناتو له پوستکو ځخه چی د تېږو په واسطه به ئې دهغوی له بدن ایستل د ځان دپاره جامی جوړولی پـه هغه زمانه کی هر کله چی انسان د تېږو ډېره ځنی استفاده کوله نو مؤرخان هغه د تېږو د دوري پنامه بللی ده دهغه وخت د انسانانو د نورو خواصونه یـو داو چی د تېـږو ځخه بـه ئې وسلی جوړولی اود هغو ځخه به ئې دوسلی کار اخیست چی ددغی دورې ځخه پخوا ئې رواج ندرلود ، پسله هغه نه کرار، کرار پـه تدریج سره د انسان دمـاغ ډېر انکشاف وکـړ او د تېږو سولول اود لرګو په ځوکو د حیواناتو د تېرو غاښونو تېرل ئې زده کړل یعنی د

غوځونکو اوتېرو آلاتو او نیزو جوړول ئې یاد او زده کړل، د تېږو په دوره کی انـانـان د کوزو په جوړولو اوجولاګری باندی قادر سول اوپه یووخت کی ددوی یو خاورین لوښی په اتفاقی او تصادفی ډول په اور کی ولوېد اود پخوا ځخه سخت اومحکم ولیدل شو نو دخاورینو لوښو پخول ئې سم زده کـړل دغه رنګه ئې دحیواناتو د غوښو کباب کول هم د ځـان دپاره ګټور وبلل، د لرګی سپکوالی اود کرېدو وړ والی انسانان د ځوزرو ګلو دتېرېدو ځخه وروسته لومړی د نیزې دورې ته اوبیا وروسته ئې دغشی اولیندی دورې ته ورسول د نیزې ددورې په وروستیو وختو کی انسانانو د عوارضو اود حیواناتو دشره د ځان دساتلو دپاره د ختو ځخه کوچنی چادیوالی بېله چت ځخه جـوړه کړه او په پـای کی د ځیرونـکو حیوانـاتو او مضرو خزندو د ضرر ځخه د ځان د حفاظت دپاره په ډندونو کی د ستنو دپاسه دغه کورونـه جوړ کړل، لدغو ځخه ځینی پههماغه ابتدائی صورت دخاورو لاندی لاس ته راغلی دی د لرغون پېژندونکو د تحقیقاتو له مخی دمځکی دننه ځخه دشپېوزرو او

شپېتوزرو پخـوانیو کـلو ترمنځ د یخ ځلور دورې تېری کړیدی، ددغو دورو تـرمنځ تقریباً د زرو کلو دپاره تودههوا هم موجوده وه چی انسانانو، حیواناتو او نباتاتو پخپله وده او نشؤنما پیل کړیدی او دوی ئې ډېر انکشاف ته تیار کړی دی ځکه چی اړتیـاوی ئې ډېری سوی وې او انسان مجبور ؤ چی ددغو احتیا- جونو د لیری کولو دپاره نوی ابتکارات وکړی، هغه وخت چی د یخ دوروستی دوره دمځکی په مخ باندی مخ په تمامېدووه، داروپا په قاره کی اوسېدونکو کړای شول چی ځینی حیوانات هم رام او تابع کړی او اهل ئې وګرځوی او هغه لومړی حیوان چی انسان رام کړی دی قطبی لېوه ؤ د میـلاد ځخه ۱۸۰۰ کاله پخوا انسا- نـان د فلز په ویلی کولو باندی پوه شول مګر د آریا- ئیانو چی تمدن ئې ډېر پخوانی دی دغه کار ئې دمیلاد ځخه ۳۸۰۰ کاله پخوا اجرا کړی ؤ هغه لـومړی فلز چی د پخوانیو فلزو ځخه لاس ته راغلی دی او د بشر په لاس

د لومړی کشف سوی فلز په حیث پېژندل شوی دی مس دی او دهغه د نرموالی او د کړېدو او ماتېدلو د قابلیت په نسبت په پای کی بشر د «مسو او قلعیو دګډولو» څخه د برنجو یا ژړو په ایجادولو او پیدا کولو بریالی شو.

په دغه ترتیب د تیرو زمانه او دوره تېره شوه او د فلز دوره شروع شوه له دغی دورې څخه وروسته یعنی دمیلاد څخه اته سوه کاله پخوا د فولادو عصر شروع شو. په دغه عصر کی آسوریانو او سومریانو د اروپایانو په نسبت ډېر پر مختګ کړی ؤ ځکه چی د فولادو نه ئې ډېری استفادې کولی.

په دغه ډول دی د بشر د تکامل داستان د تاریخ څخه پخوا زمانو کی د اوسپنی ترعصره پوری.



# مارك تواين

مارك تواين یو امریکائی لیکوال وو، چی د ریالستیك ادب په پالنه کی په نړی کی خورا زیات شهرت لری.

دی سره له دې چی په امریکائی جامعه کی روزل شوی ؤ او د ژوند د زحمت او تکلیف څخه لیری لو یدلی ؤ خو ډېر حساس پاك زړه څښتن ؤ. دی ډېر عمیق او ځیر سړی ؤ. دده له انسان دوست نظر څخه په عادی ژوند کی د بل په حقوقو تېری او تجاوز نه ور کېدی.

مارتواین پخپل یو ادبی اثر کی چی «زمادا کاینکل» نو میږی پر غلامی نفرت وایی او هغو خلکوته په کرکه ګوری چی د غلامانو سره ظالمانه رویه کوی.

دی پدې نکل کی خپل اکا ډېر ظالم سړی ښیی ځکه هغه د خپلو څو ډېرشو غلامانو سره داسی رویه کوی لکه د حیوانانو سره.

د مارك تواین «د پاچا او فقیر» داستان عالی شهرت لری او د «تام ساویر» ماجرا ئې ترا وسه څو پلا چاپ سوی ده (دځان سره د پاچا لیو پولډ خبری) په اول کی هم د انسان دوستی وظیفه پر ځای کوی او د مستعمراتو د خلکو سره د مدنی خلکو رویه د یو قبل التاریخ وحشت په ډول ښیی پخپل بل اثر (د پاچا ثر دربار) کی ارستو کراسی غندی.

مارك تواین په ۱۸۳۵ کال کی زیږېدلی او هغه وخت چی د امریکا معروف جمهور رئیس براهام لنکلن د غلامی پر ضد مبارزه شروع کړه او له نن څخه سل کاله پخوا په امریکا کی کورنی جګړه شروع سوه نو مارك تواین په فلوریدا کی د یوه تازه ځلمی په حیث د هغه د مرام د پاره په قلم مرسته شروع کړه.

مارك تواین له دې څخه وروسته د معروف شخصیت خاوند سو او تر ۱۹۱۰ کال پوری څو ئې د مرګ ورځ رارسېدله په پوره مېړانه ئې د انسانیت لپاره خدمت وکړ دده د عصر په آخره کی هغه وخت چی اروپا د نویو انقلابو په څپو کښېوتلی وه د اروپائی لیکوالو سره ئې پوره شناخت درلود د روسیې د نوی دولت د مؤسس لینن او لوی لیکوال ماکسیم ګورکی سره ئې رابطه ساتله او لیکونه ئې سره لېږل.

د عمر په آخره کی مارك تواین

باته په ۲۰ مخ کی




پخوانی ادب

# بیدل وایی

خدای رحمت بند که، که بند میاشت سوه په هاله کښې
دا مې زړه په غم تور سکور سو که دا داغ دی په لاله کښې

دزلفینو په تور تم کښې په رڼائي دمخ لوست سې
خوش خط ئې واضح دی په صفحه د رساله کښې

داچې شین زړه زما سوری دی، ستا دسرو شونډو په نوردی
که شراب دی چې ښکاریږي نن دېښمه په پیاله کښې

ماه او لمر دی راکوز سوي په لمن دشفق پټ دي
که مې یار نغښتي ؤ رغښتي په رنګینه دوشاله کښې

سین داونبکو مې په موج سو خدای دی پوري تري په خیر که
خیال زما دجان چې ناست دی پاس دسترګو په جاله کښې

داچې درغابش دی سپین سره دي په خوراك زما دوینو
که اثر دسره لاله دی څرګند سوي په ژاله کښې

که زما دزړه حال ګوري هزاره ګل ته نظر کړه
هسې تار په تار خور و ور دی ستا دغم په کشاله کښې

بېله اوښکو چې بهیږي د «بیدل» له دواړو سترګو
دریتیم به څوك پیدا که په چشمه او په فاله کښې

ښاغلی محمدګل [نوری]

# لاس می نه رسی وصلت د جانان

ګران دی

نن می بیا نیمګښه سترګی د جانان دی
تکی سرې لکه سورګل د ارغوان دی
په غمزو باندی ئې زما زړګی سوری کی
په باڼو خپل ئې پېیلی عاشقان دی

چی د جان سترګی په څېر د ارغوان سوی
پر را جمع د ښو ټول بلبلان دی

سپین غاښونی لکه سپنی نری ورجی
نری ژبه سرې اوری سره ئې شونډان دی

سپینه زنه ئې کټ مټ لکه مڼه ده
شینکی خال ئې شرمینده د بڼ توتیان دی

هر باڼو ئې لکه غشی خطا نه ځی
سر تر نوکه هسی ښخ زما په ځان دی

توری څوڼی ئې اول پر مخ پرتی دی
پر ورتلای نسم فقط تور ښاماران دی

سم قامت د یار عیناً لکه اوینته
نیغه ونه ته ئې ټول عالم حیران دی

یار زما نن یګانه دی په جهان کی
د حرم ښکلی ئې ټوله شاګردان دی

لاس می نه رسی وصلت د جانان ګران دی
خدایه څه وکم تر منځ مو غمازان دی

چی دا ښکلی کاته نه کا مغرور ګرزی
داپه داچی د ښه حسن تښتنان دی

مینانو لره خوب و خندا نسته
د مین په غم کی ډوب ستړی ستومان دی

۱٦ مخ دی وکتل شی

ښاغلی عبدالمنان

# خوښ یم

ز ه د یـار په درد غم لړلی خوښ یم
د دلبر په‌زلفو غبرګ تړلی خوښ یم

محبت می دی مینډلی په ژړا کښی
دبلبل په شان په‌ګل ژړلی خوښ یم

چی صفت څما دیار ور په کښی نه‌وی
د هغه مجلس نه زه شړلی خوښ یم

دشهباز په شانی خوښ په‌هوا نه‌یم
ددلبری په څنګل کښی مړی خوښ یم

زه د یار دتورو زلفو دیدن غواړم
څکښدن کښی خپل دلبردم کړی خوښ یم

په‌ژړا کښی می موندلی خوشحالی ده
زه‌داوښکو په‌سېلاب کښی وړی خوښ یم

زه پښتون «عبدالمنان» همېشه وایم
تل په‌درددعاشقۍ کښی ستړی خوښ یم

---

د ۱۵ مخ باته

مینا ن تل بند په زړل د خپل مین دی
مینان مدام په وړ د خپل جانان دی

معشوقان چی کله هوکی کله‌یه‌کی
په دې چم ئې تړ یستلی عاشقان دی

«نوری» نوره مینه مـه کوه د ښکلو
ننني آشنایـان ټـول بی وفـایان دی

ښاغلی [ الفت ]

# د ژوند ډیوه

شپه د وصل وه مجلس وو دیارانو
د مینو ، د درد منو ، رنځورانو

د ژوندون ډیوه دعشق په اور رڼا وه
د خلوت کور کښی د حسن تجلا وه

چی کتل می د کوم لوری پتنګ راغی
لوګړن او تلولو په غور ځنګ راغی

ډیر بېتابه ؤ چی ځان ستی په اور کړی
سمد لاسه ځان پر اور باندی نسکور کړی

د تن پښتی خپل له ځانه کاندی لیری
کړی پیدا ځان ته د روح نوری وزری

کوم زړه سواندی ور ته ویلی ګوره سوزی
ژوندون ښه دی په دنیا کی یو څو ورځی

دومره پاتی سه چی څه وینی سبا ته
په رڼا ورځ یو ځل وګوری دنیا ته

پتنګ ووې زه مین په دې رڼا یم
له قدیمه په ډیوه باندی شیدا یم
زما ژوند لکه ډیوه دځان سیزل دی
ځان ساتل له سوزېدونه مړه کېدل دی

ډیوه هغه وخت ژوندی وی چی بلیږی
مړی هغه وخت چی له اور څخه بیلیږی

زموږ مرګ او ژوند له نورو فرق لری نه
له سېزلو نه نجات دی زموږ مړینه

سوز او ساز د زندګی ښه تماشا ده
بی رڼا اوسېدل مړینه او فنا ده
زه د عشق له نور او ناره نه ویریږم
د خلیل په شانی سرو لمبو ته لوېږم

ښاغلی سلیمان [ لایق]

# وحشي طبعه

نه مست د خرابات وي نه منه د حرم کړي
څه وحشي طبعه لرمه چي له ټولو څخه رم کړي

د ملګرو خامې هیلې هغه چاري په ما کاندي
چي تبه یې په غنم کړي، حرارت یې په شبنم کړي
زړه مې بس چي د یارانو ځان ځاني آزرده کړي
نه د چا په خندا خاندي، نه د چا په غمو غم کړي

د صحرا د سره شفق نه د جنون پیغام را رسي
په مجنون چي مینې وکړي هغه چاري په ما هم کړي
پریشان توفان خوځیږي د لیلي د څڼو موج کښې
راته ښکاري د اسپلاب به زما د زړه خونه برهم کړي

ګوشمالي د حوادثو هغه چاري په ما کاندي
لکه ګوتې د مطرب چي د رباب په زیرو بم کړي
ساقي! مړ کړم حسرت تو نو خاوري شو یو ارمانو نو
یو ه تر څه پیمانه راکړه ګوندي وي چي څه مې تم کړي

---

ښاغلی [ننګیالی]

# د اوښکو امیلونه

د مینې په څپو کې سلامونه درلیږم
د مات زړګي دردونه پیغامونه درلیږم

د تن غوښې شوې ویلې اوس به خود له غمه مر مه
وړو، وړو سلګو سره آهونه درلیږم
د آه او اوسیلو سره د ستا د زړه تسل ته
د سوي زړګي څړیکې، ګدازونه درلیږم
جنون کې چي بېلتون سره په برخه مې ژړاسوه
تحفه د زمو اوښکو امېلونه درلیږم
پاته په ۱۹ مخ کې

# انسانان هم په خپل

## کوګل کی یو ساعت لری

دغه دانسان په کوګل کی دننه ساعت ډېر حساس دی او ددهٔ حساسیت په تودوالی او رڼائې سره توپیر کوی او زیاتیږی .

هغه وګړی چی ددوی ژوند منظږوی کولای شی په ډېره ښه توګه بېله کوم دېوالی او یا سرمیزی او نورو ډول، ډول ساعتونو څخه د خپل هغه ساعت په وسیله سره چی ئې په کوګل کی موجود دی استفاده وکړی اوخپل وختونه پری وټاکی، دمثال په توګه دغه راز وګړی کولای شی په یوه ټاکلی وخت له خوبه را وینښ شی او په یوه ټاکلی وخت ویده شی .

پوهان له ډېرو اوږدو کتنو او پلټنو دې نتیجی ته رسېدلی دی چی هر انسان د نورو حیوانـاتو په څېر یوه شعوری قوه «یعنی په وجود کی دننه یو ساعت» لری چی دغه ساعت بیا ځانته خاص قوانین لری .

یو الماني پروفیسور چی آسکوف نومیږی دې نتیجی ته رسېدلی دی چی د ژوندیو حیواناتو او انسانانو اعمال د یوه وخت پېژندونکی څیرك او دقیق اندام په وسیله سره تر کنټرول لاندی نیول کیږی .

دغه اندام چی لاتراوسه پوری ئې دا پته نه ده معلومه چی د بدن په کوم ځای او کوم غړی کی به وی هره ورځ له کیهانی ساعت سره برابرېږی .

د لمر او بر بښنا ورانګی او تودوالی ددغه ساعت حساسیت زیاتوی او بر عکس دی په سړو شپو او ورځو او تیارې کی خپل ګړندیتوب او توازن د لاسه ورکوی .

دغه پروفیسور څوتنه په یوه داسی محیط کی تم کړل چی د شپی او ورځی له تلو، راتلو څخه بیخی بی خبره وه ، وروسته ئې بیا د مصنوعی نور په وسیله سره داسی کار وکړ چی ځینو د دوی به ویل شل ساعته تېر سوی او ځینو نورو به ئې بیا ویل دېرش ساعته تېر سویدی .

دغه پروفیسور پدې عقیده دی چی انسان کولای شی چی د بدن د روزنی دستګاه د کار د پېژندلو په ډول او طرز

نور په ۲۵ مخ کی

د ۱۸ مخ پاته برخه

د زړه‌ورو کاسو نه می ورو وینی څڅېږی
د سوز سره د وینو ډك جامونه درلېږم
په پاکه مینه زه «ننګیالی» تاته نازولی
کترې، کترې د زړه نه سوغاتونه درلېږم

ژباړونکی: غفور حمیدی

# ګیدړه

## یو سیاستمدار حیوان دی

طبیعی ده چې هر حیوان په خطر پوه شي یا تښته کوی یا کوښښ کوی چې پر دښمن باندی غالبه شي خو په حیواناتو کی ګیدړه ده چې هیڅکله نه تښتی او په مکر سره خطر رفع کوی. بلهٔ داچې د ګیدړی د زامنو تربیه

له نورو حیواناتو څخه بېله ده پدې ډول چې ښځه ګیدړه دورځی وزامنو ته نژدې یو ځای پټېږی او حمله پر کوی پخپلو منګلو هغو ته کوچنی، کوچنی زخمونه وربښوی یائې ترغاړه نیسی هاخوا دېخوا ته ئې کشوی.

له دې کار څخه ئې مقصد دغه دی چې هغه د کوچنیوالی له وختو څخه ببر پدونکی لوی نشی.

باید پوه شو چې د ښځی ګیدړی د حمل وخت دوې میاشتی دی او په هر لنګواله کی له ۴ څخه تر ۷ پوری زېږوی کله، کله ئې شمېر و ۱۲ چیچیانو ته رسیږی.

د کوچنی ګیدړو د قد اندازه و لس سانتی مترو ته رسیږی.

ښځه ګیدړه وهیڅ حیوان ته اجازه نه ور کوی چې و چیچیانو ته ئې ورنېږدې شي ځکه پر لیده سوی دی چې زمری ئې په دغه سبب وژلی دی.

د روم پخوانی خلکو به په لویو میلمستیاوکی و خپلو میلمنو ته د ګیدړی کباب یا سرې کړی غوښی ورکولی دافریقا په ځینو هیوادوکی بزګران دخپل خوراک دپاره دګیدړی له غوښو څخه خواړه، خواړه جوړوی.

ګیدړه د نړۍ په ټولو ځایوکی لیدل سوېده او د بدن رنګ ئې ډول، ډول رنګ سوی دی په هر ځای کی ئې جلا رنګ لکه: سپین، آبی، سور او مشکی دی.

حیوان پېژندونکی او هغه کسان چې د ګیدړی د ژوند په باره کی ئې څېړنی کړیدی ددې دپاره ئې دغه صفتونه وېلی دی: فوق العاده حافظه استعداد، اختراع، اکتشاف، بردباری، شجاعت، مهارت، چابکی د جنګ نبوغ ددې دپاره چې د دښمن په مخکی پوهیږی او دستی ماهرانه نقشه پیدا کوی.

د کورولوړوالی ئې له ۲ مترو څخه تر ۳ مترو پوری نیول سوی دی چې په هغه کی سالن د ذخیرې ځای، د پټېدو ځای سره معلوم دی. د ګیدړی ژوند په میانه ډول ۱۵ کاله دی وروسته په یوازیتوب کی مری.

د نامتو حیوان پېژندونکی «لافتون» په قول اوس د زمری پر ځای ګیدړه د ځنګلو پاچاده او امیری پر کوی. باید پوه سو چې دا حیوان هیڅکله اهلی سوی نه دی.

---

## مارك تواين

د ۱۳ مخ پاته

ضعیف او مریض شو او ځرنګه چې د خوشحاله طبع څښتن و او په ادبی الفاظو ئې هغه د قدرت خاوندان چې خپل قدرت ئې د

انسانانو د خرابۍ لپاره په کار اچاوه ده مسخره کاوه نو هغو مجادله ورسره شروع کړه ځو په ډېره کمواکی او غریبی کی مړ سو خو ترځان وروسته ئې د ادب په لارکی داسی یو مکتب پرېښود چې شاګردان ئې ترنن پوری دده پر لار د انسانیت لپاره په خدمت لګیادی.

# د خندا !!! پلوشې

د محمد ناصر [ نصرت ]
ژباړه او ټولونه

## د طیارې میدان

د شپې په یوه میلمستیا کې دیوې ښکلې او ځوانې ښځې په غاړه یو امیل وو، هغه امیل چې د ښځې پر جګه غاړه او لنځیګر راځړېده په سر کې ئې یو طلایي الوتکه ځوړنده وه هلته یو ځوان د سالون له یوې ګوښې څخه پر دغه طیاره سترګې ومښتې او دومره ډېر ئې ورته وکتل چې په پای کې هغه ځوانه ښځه نژدې ورغله او ورته وئې ویل: معلومېږي چې زما دغه طیاره دې ډېره خوښه شوه؟

ځوان په ډېره خوږه ژبه ورته وویل: چې یه، تر الوتکې مې میدان ډېر خوښ دی.

✲✲✲

## استاده ! بیرغ

یو خیاط د سختې ناروغۍ پر بستر پروت، او د خوب په عالم کې ئې ولیدل چې په هوا کې یو لوی بیرغ ښکاري، چې پر هغه باندې ټول هغه رنګ په رنګ ټوکران چې د سکښت پر وخت ئې د مشتریانو له کالو څخه ترونبولي وه ځړېږي او هم ئې ولیدل چې د عذاب ملایکې په یوه لاس کې دغه بیرغ او په بل لاس کې یو لوی ګرز نیولی دی چې د هر ټوکره پر وار دغه خیاط پر سر، سر باندې په وهي.

کله چې له خوبه ویښ شو نو له ځانه سره ئې عهد وکړ چې که دا ځلا جوړ او خیاطي شروع کړم بیا به د مشتریانو ټوکران نه غلا کوم او هم به دغه ناوړه عادت له ځانه لیرې کوم.

ځرنګه چې دغه خیاط په ځان پوره باور نه درلود نو دغه تفصیل ئې و خپل یو شاګرد ته بیان کړی، او پر هغه ئې ټینګه کړه، هر کله چې زه د کالو په سکښت لاس پورې کوم ته به را ته وایې: استاده! بیرغ....

تر دغو خبرو وروسته تر یو وخته پورې خیاط د خپل شاګرد خبرو ته غوږ نیولی، له خپل قوله نه اوښتی. لیکن یوه ورځ د خیاط یو شته من مشتري یوه ډېر قیمت لرونکې ټوکر ورته راوړی او ورو ئې سپاره چې کالي ور جوړ کړي.

پدې وخت کې د خیاط تقوی او قول تر یو سخت طوفان لاندې راغلی او چې استاد ئې غرق او مغلوب ولید نو شاګرد ئې ځو ځلا پر نارې کړه چې:

استاده بیرغ. استاده! بیرغ...

خو استاد ئې حال پلن اچولی پر شاګرد ئې بوغ کړه: چپ شه بې علمه سړیه ته څه خبر یې دغه ټوکر هلته نه ځړېدی.

### نشه سړی او ګزمه

یو ګزمې په نیمه شپه د بازار په منځ کې یو نشه سړی بیده لیدلی او چې تر لاس ئې ټینګ ونیو ور ته وئې ویل: ولاړ سه چې ځو.

نشه ور ته وویل: چې چیر ته به ولاړ شو؟

ګزمې ور ته وویل: چې بندیخانې ته.

نشه ناریې کړه چې د خدای [ج] پار دی لاس مې ایله کړه، ځکه که زه د تنګ وای خو کور ته به تللی وای نو دلته د بازار په منځ کې مې څه کول؟!.



### د میړه مرګ

د یوې ښځې میړه مړ، او کله چې دا ښځه له هدیرې څخه کور ته راغې وه، یو یو ګام وروسته به ئې تر شا کتله، آخر یو چا پوښتنه ځني وکړه آیا داچې هر ګړی تر شا ګورې، د میړه د فراق درد او ګرانښت دی مجبوروي؟

ښځې ور ته وویل: چې یه. خدایږو ډار یږم چې مبادا بېر ته ژوندی او کور ته راشي.



### عادل شاهد

یوه ښځه او یو ځوان په ریل کې سره ناست، په سفر راغي وه. ریل په یو داسې غار کې چې د غره په دننه کې واقع ؤ ننګ کاوه. ښکاره ده چې په هغه وخت کې ټول په تاریکه کې راغي او کله چې تر غار د باندې ووتل، نو ښځې شکایت وکړ چې دغه ځلمي په تاریکه کې زما څخه مچه واخیسته او هم ئې دا په زغرده ویل: څرنګه چې ځوان زما پر شرف حمله کړېده نو باید ددې کار د تاوان د رفع د پاره د جریمې په توګه ډېری پیسې تادیه کړي.

دغه خبره تر محکمې رسېدلې، او په محکمه کې د قاضیانو له خوا له ځلمي څخه ډول ډول پوښتنې کېدلې، خو ځلمي به په هره پلا کې له دغه کار څخه ځان بېګناه ښکاره کاوه آخر قاضي و ځلمي ته وویل: آیا داچې دغسې حرکت له تا څخه نه دی صادر سوی څه دلیل لرې؟

ځلمي په جواب کې ور ته وویل: تاسې دغه ښځه پر پرېږدئ چې خپلې ټولې خبرې تمامې کړي، تر هغه وروسته زه په محکمه کې یو داسې عادل شاهد لرم چې د دغې ښځې ټولې خبرې ور دروغ کړي.

کله چې د محاکمې په پای کې له ځلمي څخه پوښتنه وشوه چې ستا عادل شاهد څوک دی؟

ځلمي وویل: چې زما عادل شاهد د همدغې ښځې بد شکل، خوا ګرځنه چهره او قیافه ده. آیا په دنیا کې به یو څوک پیدا سي چې دغه بد شکل ته مائل او دغه منحوس مخ دې مچ کړي؟؟!.



### وسواس

یو سړی کوم فقیه ته ورغلی او ور ته وئې ویل: ماحس کړه، چې لمن مې له نجاست څخه مبتلې لېکن هرڅه چې مې پسې وکتل هغه چټل ځای مې ونه موند.

فقیه ور ته وویل: عیب نلري، ځکه اوس خو اصلي ځای پاک ښکاري. نو لمن دې هم پاکه ده.

سړی قانع نه شو، یو بل فقیه ته ورغی او دغه سوال ئې ور ته تکرار کړ.

هغه ور ته وویل: څرنګه چې پر پول د ښه والي باعث کیږي نو ښه دی د احتیاط د پاره دی لمن پر پمنځه.

سړی پدغه پلا هم قانع نشو او یو بل فقهه ته ورغی .

دریم عالم ته څرنګه چې د تېرسوی جریان په اوریدو سره د سړی وسوآس او لېونتوب وربنکاره شو نودهغه د شر د رفع دپاره ئې ورته وویل: څه ولاړ شه لو مړی دی لمن چټله کړه او بیا ئې پرې مینځه!.



## سره ښوروا

له یو عربی څخه پوښتنه وشوه چې سره ښوروا په عربی څه شی بولی ؟

عرب ورته وویل: چې موږ عرب هیڅکله ښوروا دې ته نه پرېږدو چې سړه سی ، او له دغه سببه ئې وتسمیی وجه ته هم نه یو محتاجه سوی یعنی کله چې ښوروا توده وی سره ، سره ئې خورو .

---

## کار

هغه خوند چې له کار او کوښښ څخه پیدا کیږی تر ټولو خوندوار نشو ښه خوشحالونکی دی .

د کار نتیجه استراحت دی . د کوښښ او هنرمندی نتیجه باطنی خوښی ده . پدې ځای کی پښېماني ، غم ، ناروغی او بله هیڅ نامطلوبه نتیجه زموږ خاطر نه ازاروی .

کار د بدن د روغتیا منشأ ، دخوشحالی او پرمختګ وسیله ده .



### ته ای ځوانه

د ۱۹ پېړی نامتو لیکوونکی تولستوی لیکی :

ته ای ځوانه ژبه بنده کړه او لاس ایله کړه یعنی د کار سړی سه ، نه د ویلو ځکه یوازی کار دی چې موږ ومقصد ته رسوی او د افتخار ګلونه زموږ پر سینه ټومبی .

# ابدیت

دغه دی ستا کورته راغلم ؛ پدې تروږمیه شپه کی می تا ته ږغ وکړ ، ستا د کور زنځیر می وشرنګوی ، خوهیڅ چا راته جواب رانکړ او ځنډمی او ږد شو .

ستا دیدن می په برخه نه شو ؛ دغه دی اوس بیرته ځم او دا پاڼه تاته پرېږدم ، دا ځکه چې ته پوه شی چې زه راغلی وم او ستا دروازې ته ولاړه وم .

دغه دی زه بیرته پخپله لاره ځم ؛ په هغه لاره چې انتها نلری .



هغه راغلی وه خو زه پری پوه نه شوم او ... بدی برخی .

دا څو مره دروند خوب وو ؛

هغه دشپی پـه چپه چپتیا کی راغلـه او پخپلو نـریو ګوتو ئې زمـا په غـوږ کی یوه موسیقی نغمه وغوله په اوچت آواز ئې نغمی وویلی ؛ خو زه ویده وم او هغه پـه راغلی لاره ولاړه .

څه وخت چې ویښ سوم ، د سهار وږمه په نڅا ګډه وه ؛ د ګڼو نو فضا می په خوشبویه عنبرو ډکه وه .

آه .. افسوس ... دخوا ږه خوب کیف می د شپی پـه وروستی برخـه کی دلاسه ورکړ .

اوه . . . . د هغی د غاړی هار او د ګلانو امیل زما په سینه لوبی کولی خو زه پوه نه سوم ، ما ته را نژدې سوه خو زه پوه نه سوم .

«ټاګور»

د رشید [آرین] ژباړه

# ملت

ملت څه شی دی؟
تر ټولو د مخه ملت د افرادو ټاکلی اشتراك دی.

دا اشتراك نژادی او قبیلوی جنبه نلری د ایټالیا اوسنی ملت له رومیانو، ژرمنیانو، اتروسکانو، یونانیانو، عربو او نورو څخه جوړ دی.

د فرانسی ملت له ګلانو رومیانو، برتونانو، ژرمنیانو او نورو څخه تشکیل سویدی د انګریزانو، المانیانو او نورو په باره هم باید دغه وویل شی چی د بېلو، بېلو نژادو او قبیلو څخه جوړ سوی او د ملت شکل ئې غوره کړیدی.

نو ملت نه نژادی جنبه لری نه قبیلوی. بلکی د افرادو یو اشتراك دی چی د تاریخی عواملو په اثر منځ ته راغلی دی.

له بلی خوا شك نسته چی د کوروش یا سکندر ستر دولتونه ملت نسو بللای که څه هم د تاریخی عواملو په نتیجه کی او له ډول، ډول نژادو او قبیلو څخه جوړ شوی وه. دا ملتونه نه وه بلکی د هغو ډلو تصادفی او کم ارتباطه ګډوالی ؤ چی انفصال او اتصال ئې د دې یا هغه تافح په بری یا ماته پوری تړلی ؤ.

نو ملت یو تصادف او تېر پېدونکی ګډوالی ندی بلکی د افرادو ټینګ او پا برجای اشتراك دی.

خو هر پا برجا اشتراك ملت نه جوړوی اتریش او روسیه هم د افرادو پا برجا اشتراك دی، خو هیڅوك ئې ملت نه بولی نو د ملی اشتراك او دولتی اشتراك تر منځ څه فرق دی؟ سره ددې چی ملی اشتراك بېله مشترکی ژبی څخه مفهوم نلری، خو ټول هیواد ته مشترکه ژبه حتمی نده.

په اتریش کی د چکی ولس وجود او په روسیه کی د لهستانی ملت وجود د مغوی د مشترکی ژبی بېله وجود څخه ممکن ندی پداسی حال کی چی په روسیه کی د ننه د یو لړ بېلو، بېلو ژبو وجود د روسیې او د اتریش د تمامیت نه مانع کیږی.

البته خبره په هغو ژبو کی ده چی وګړی په کړیږی نه اداری رسمی ژبی..

نو د ژبی اشتراك د ملت له بېلو نښو څخه دی البته له دې څخه نو دا نه معلومیږی چی بېل بېل ولسونه تل او هر ځای په بېلو بېلو ژبو ږغیږی، یا ټول هغه افراد چی په یوه ژبه خبری کوی خامخا یو ملت جوړوی مشترکه ژبه هر ملت ته لازمه ده، خو بېلو بېلو ولسو ته ډول، ډول ژبی حتمی ندی! داسی ولس نسته چی په یوه آن کی دی په ډول، ډول ژبو خبری کوی خو له دې څخه نو دا نتیجه نه راوزی چی داسی دوه ملته نه مونده کیږی چی په یوه ژبه دی نه ګړیږی! انګریزان او شمالی امریکائیان په یوه ژبه ږغیږی سره ددې چی دواړه یو ملت ندی. عین دغه خبره باید د نروژیانو او ډنمارکیانو انګریزیانو او ایرلینډیانو په باره کی وویل شی.

خو مثلاً" انگرېزیان او شمالي امریکایان د مشترکې ژبې سره ولي یو ملت نه تشکیلوي .

تر ټولو د مخه پدې علت دوی یو ملت نه تشکیلوي چې یو ځای ژوند نه سره کوي بلکې په بېلو، بېلو هیوادو کې ژوند کوي.

ملت یوازې د اوږده او منظم معاشرت په نتیجه کې د هغه مشترك ژوند په نتیجه کې جوړېږي چې وګړي ئې

پښت پر پښت سره کوي خو اوږد مشترك ژوند بېله مشترکې مځکې څخه نسي کېدلای.

انګرېزیان او امریکا- یان پخوا په یوه مځکه کې یعنې پـه انګلستان کې اوسېـدل او یـو ولس ئې تشکیلاوه .

وروسته د انګرېـزانو یوې برخې له انګلستان څخه په امریکا کې نوې مځکې ته مهاجرت وکړ او دلته ئې

په نوې مځکه کې د وخت په تېرېدو سره د شمالي امریکا نوی ملت جوړ کړ، مختلفې مځکې د مختلفو ملتو تشکیل منځ ته راوست.

« نو د مځکې اشتراك د ملت له مشخصه نښو څخه دی

خـو خبره دلـته نـه تمامېږي د مځکې اشتراك خود بخوده ملت نه جوړوي

بلکې تردې عـلاوه یوه د ننني اقتصادي رابطه لازمه ده چې د ملت مختلفې برخې ئې په یوه حـد کل کې سره متحد کړېدی.

د انګلیس او شمـالي امریکا ترمنځ یـو داسې ارتباط نسته نـو ځکه دوی دوه بېل ولسونه تشکیلوي

خو که د شمالي امریکا مختلفې سیمې د هغوی ترمنځ د کار د وېش، د ارتباطي لارو د پراخي او

نورو په سایه کې یو د بل سره د یوه اقتصادي واحد په شکل نه مربوطېدلای پخپله شمالي امریکا یا نو هم د ملت د نوم وړتیا نلرل.

د مثال د پاره به ګرجیان په نظر کې ونیسو ګرجیانو تر رفرم «۴» د مخه په ګډه مځکه کې ژوند کاوه په یوه

ژبه ئې خبرې کولې خو سره ددې ئې د کلمې په خاصه معنی سره واحد ملت نه تشکیلاوه ځکه پر یولړ یو له بل څخه جلا شاهزاده نشینو باندې

وېشل سوي وه او که اقتصادي ژوند ئې نشوای لرلای پر له پسې پېړۍ یو له بل سره جنګېدل ایرا- نیان او ترکان ئې یو پر بل باندې

را تحریکول او د یوه و بل کور و نه ئې سره خراب ول. د شاهزاده نشینو تصادفي او تېرېدونکې اتحاد چې یو بختور پاچا به ئې کله پر عملي

کولو بریالی سو پخپل پخپل پښې نو حالاتو کې یوازې سطحي اداري محیط په برکې نیوی او ژر به د شاهزادګانو د هوسراني او د

بزګرانو د بې علاقګۍ په نتیجه کې سره وشلېدیه . البته د هغه اقتصادي تشتت په نتیجه کې چې په ګرجستان کې موجود و، بل ډول نشوای کېدلای . ګرجستان

# انسانان هم...

د ۱۹ مخ پاته

سره بېلـه دې چې ستړیـا او ستومـاني حس کړي ډېر کار وکړي

دغه پـروفیسور اوس پدې لګیا دی چې یو داسې جدول جوړ کړي چې د هغه په وسیله سره دا وکولای شي چې د خپل

کومګل ساعت وېشي نیه او د خپل کار ساعتونه له هغه سره تطبیق کړي . د دغو ازمـوینو نتیجې به ژر روښانه او خپرې سي .

یوازی د۱۹۰ پېړی په دوهمه نیمائی کی د یوه ملت په عنوان ظهور وکی چی د سروا ژسقوط، د هیواد

د اقتصادی ژوند ودې، دارتباطی لارو پراخوالی اود سرمایه دارۍ راپیدا کېدو د ګرجستان د بېلو بېلو سیمو ترمنځ د کار وېش

برقرار کړ، په نتیجه کی ئې د شاهزاده نشینو اقتصادی محدودیت پرمخ متزلزل کړ اوهغوی ئې په یوه اقتصادی واحد کی یو دبل سره وتړل.

نو د اقتصادی ژوند اړیکی د ملت له مشخصه خصوصیاتو څخه دی

خو خبره پردې ځای لا نه تمامیږی، ترډې علاوه چی وویل سول، دالازمه ده چی د هغو خلکو د معنوی بڼی خصوصیات

هم ترغور لاندی ونیول شی چی په یوه ملت کی سره متحد سوی دی. ولسونه یوازی د دوی د

ژوند د شرایطو پراساس یو له بله څخه بېل ندی بلکی د خپلی معنوی بڼی پراساس هم چی د دوی د ملی فرهنګ په خصوصیاتو کی تجلی کوی، یو له بله څخه بېلیږی، که د انګلستان، شمالی امریکا او ایرلنډ خلک چی په یوه ژبه خبری کوی درې سره بېل ولسونه تشکیلوی.

پدې باره کی مهم او د توجه وړ نقش د دې ولس مخصوص روحی ساختمان دی چی د ژوند د سره ناورتو او سره بېلو شرایطو په نتیجه کی پښت پر پښت منځ ته راغلی دی،

البته روحی ساختمان یا هغه څه چی «ملی اخلاق» ئې بولی پخپله هغه څه نه چی په سطحی نظر ورته

ګوری د درک وړ ندی، خو کله چی په فرهنګی خصوصیت کی چی و ملت ته عمومی جنبه لری منعکس

کیږی د درک وړ دی اوسړی سترګی ئې پر پټولای.

دا خبره و یادولو ته اړتیا لری چی «ملی اخلاق» داسی شی ندی چی همېشه ثابت او پر یوه ډول وی

بلکی د ژوند د شرایطو سره سم تغیر پیدا کوی، خو څرنګه چی په هره مفروضه لحظه کی وجود لری نو ځکه

خپل نقش د ملت پر بڼه باندی ښکاره کوی.

نو د روحی ساختمان اړیکی چی د فرهنګ په اړیکی کی اغیزه لری، د ملت د مشخصه نښو څخه دی

پدې ډول مو د ملت مشخصه نښی پای ته ورسولې. ملت د افرادو ثابت ګډون دی:

چی د تاریخی عواملو په اثر ئې ترکیب موندلی اود ژبی، ځمکی، اقتصادی ژوند او روحی ساختمان

چی د فرهنګی اړیکی په شکل منعکس کیږی، پراساس منځ ته راغلی دی.

ضمناً دا هم ښکاره ده چی ملت هم لکه هره تاریخی پدیده د تغیراتو د قانون تابع دی، ځان ته تاریخ لری، شروع لری پای لری.

باید دا یاده سی چی له پورتنیو نښو څخه هیڅ یوه یوازی د ملت د تعریف د پاره کافی نده ګڼل کېدای.

لدې نښی څخه د یوې نیستی کافی ده چی ملت نور نو ملت نه وی.

امکان لری داسی خلک ونیول شی چی مشترک «ملی اخلاق» ولری خو سره ددې چه د اقتصادی لحاظه سره جلاوی په سره بېلو ځمکو کی ژوند وکړی په ډول ډول ژبو خبری وکړی او داسی نور، دوی یو ملت نشو بللای.

لکه د روسیې، ګالیسی، امریکا، ګرجستان او د افغانستان یهود، چی زمونږ په عقیده یو ملت نه جوړوی. (نور بیا)

## یو شعر ....

د دوهم مخ باته

په نامه شهرت لري .

هغه مهال چې (هنر د هنر لپاره) استخدام شو نو د شعر پر پیکر لومړني ګذار داؤ چې هغه په نوي پیرایه او صبغه مقدس رنګ وا خیست د اتقدس له هغه تقدس سره یوره تو پیر درلود چې د منځنیو پېړیو په دوران کې د کلیسا په دالانو نو کې ورته په نصیب سوی ؤ .

دې نوي تقدس شعر له سادګي ځخه در مـو زونو یوه داسې عالم ته ارتاو کړ چې بیا نو چا پېژندلی هم نشوای او دغه وخت قهرمانا نو به ویل چې شعر باید د انسانی نړۍ په لوت ککړ نشي بلکې هر ځو نه چې طبیعت په وحشي ، نا پېژندونکي او ددی په اصطلاح په جاودانی عالم کې لا هووی هغو ته ارزښت لري. ددوی په نظر وویل چې حتی انسانی ذهن که د شعر په رمـز پوه سو دغه باید د شعر د کنز وری دلیل و بلل سي .

دا بحران چې د یوطاعون په ډول د شعر د بدن شو په و ایستله نو هغه وخت پر راورسېدی چې د نړۍ شرایط د شلمې پېړۍ په اقتصا دی سیاسی بدلون پر له واونښتل او نوویو پېښو و له راتګ سره په دنیا تو کې غلبه د ریالیزم په نصیب شوه .

په ریالیزم کې شعر بیرته خپل بالواسطه حالت چې د اجتماعی جریانا تو په تسلط کې له لاسه ور کړی ؤ بیا وموندا او د ساده ګي او بسیط والی اصل یکښې را ژوندی شو .

موږ نن ددې اجتناب ـ ناپذیره واقعیت ځخه ګر سره ځان نسو پېچلی چې واقعا نبه شعر هغه دی چې سادګي ولري او بسیط والی یکښې موجود وی .

---

### ⪢ دشعر دپاره دملټن دوهم اصل ⪡

یو رته موږ دا نګلیسی لیکوال جان ملټن د هغو درو اصلو ځخه لمړی اصل و ځېړی چې د شعر دپا ره ئې په معیا ري ډول حدود په تعین کړی وه .

په روانه مقاله کې موږ دملټن د درو اصلو نو ځخه دوهم ـ اصل ځېړ ؤ چې هغه شعر له نا پېژندونکي عالم ځخه و پېژندلی دنیا ته راولی .

ملټن ویلی وه : چې نبه شعر هغه دی چې سر بېره پر سادګي او بسیط والی ( د نفسانی لذاتو ځخه هم خارج نه وی ) یو شعر چې د نفسانی لذاتو ځخه خارج د کوم عالم ځخه بڼغیږی هغه ځکه نبه شعر کېدای نشي چې دیوه وحشي ذهن مولود وی او بل هغه ذهن هم وحشي ګوی چې دده زېږ نده وی هر کله چې کوم ذهن له عینی جهان ځخه جدلی تصنیف سموونه لری نو درک ئې ذایل کیږی او هغه وخت چې د شیا نو او رېدو درک فا سد شي نو دا ذهن وحشي بلل کیږی او د عمل په ساحه کې ددغسې پر له پاشلی ذهن احکام نه یوازی فرد او ټولنی د اجتماعی ژوند سیستم ته بې فایدی تمامیږی بلکې د هغه پر مختګ شنډه وی او ر کود ته ئې منجر وی که موږ شعر د هنر مند د ذهن هغه مولود و بولو چې د عینی عالم ځخه ئې نطفه اخستل سوی وی نو هغه باید طبیعت تا بع وی او د هغه تر کمبله پښی و نه غزوی هر هنر مند چې د طبیعت انعکاس پخپل هنر کې ښکاره کړی او تر هغه ها خوا ته غرض داره نسی نو دی یو ریالست هنر مند دی او هر شاعر چې دیو هنر مند په حیث ددغو حدودو په پېژندنه موفق وی نو دده اثر به اغیزه هم لری .

موږ ددې واقعیت له منلو څخه ناګزیره یو چې هنر باید د انساني ژوند عطیه وبولو او ددې حقیقت

له منلو څخه وروسته نو اصل کار دادی چې هغه د ژوند لپاره استخدام شي.

هغه چې هنر د هنر د پاره وقفوی دوی د هنر هره ځانګه مغشوشه کړې ده او

په خاص ډول د شعر څخه ئې یوه عجبه قواره جوړه کړېده.

په شعر کې چې د نفساني لذت پیروی نه وی‌سوی او یواځې د یو وحشي تخیل زېږندوی او سر بېره پردې

د هنر برای هنر د فلسفې په پیروی جوړ سوی وی نو ددغسې هنرمند د ذهن او عیني جهان ترمنځ دونه تفاوت موجودوی چې قواره ئې یو وخت یوې عربي مجلې داسې ترسیم کړې وه.

شاعر د خپلې ښکلې محبوبا په شان کې شعر وائي د هغې مخ د سپوږمۍ خوله د مشواني زلفې د ماران و سترګې د

ګولۍ (مردك) غاړه د صراحي او دغسې ټول اندامونه د یوه بل شي سره په تشبهه

# ادب

د ۱۰ مخ پاته

نن ورځ د هغې معنی نه بغیر چې زموږ په محیط کې د ادب او بې ادب په مورد موجوده ده او ادب نا ك هغه چا ته ویل کیږي چې د مشرانو احترام کوی او د هغوی

د مخه خبرې او د نظر اظهار نه کوی او تل چې مشران څه ورته وائي هغه عملي کوی

او د کړو ګام پر ګام تعقیب کوی او بې ادب هغه چا ته ویل کیږي چې د مشرانو او

لویانو د مخه ګړوی او سترګي ئې نه تخیږي او د هغوی له مخه لکه یو مستقیل موجود ناسته او ولاړه کوی.

ادب یوه نوی دنیا او نوی ځان ته مستقیل شکل غوره کړی دی یعني هغه یوازې ندی چې یو شاعر ئې د خط، خال

وصفوی ددغو الفاظو څخه جوړ سوی رسم داسې راغلی دی چې د صراحي پر غاړه د

سپوږمۍ مخ دی او د خولې پر ځای ئې مشوانۍ ده په سترګو کې د توپکو مردك

پراته دی او پر اوږو ئې د سر له خوا لوی، لوی ماران راځړېږي دا نو د شعر هغه منظره ده چې د نفساني لذت

ښکلا او نندارې، ورځو، باڼو-ګانو، شونډانو، باړخوګانو قد او داسې نور د معشوق په اوصافو کې خیالي او تصنعي تشبیهات

جوړوی او په غیر واقعي ډول حقیقي موجودیتو نه د مجاز او استعاري په شکل یو د بله سره تړی بلکې نن ادب د انسانانو په ژوندانه کې

دومره پراخه فضا اشغال کړېده هیڅ تحول او تکامل د هغه شي څخه وتلی نه شي او دغه مفهوم چا په یو ځای کې داسې ادا کړېده.

ادب د ژوندانه د هغه درس او وصف څخه عبارت دی چې د ژوندانه لوړتیا او ارتقا یې ښې مقصد وی. «پای»

او پېژندلی عالم څخه جلا جوړه سوېده.

دلته په موږ کې هم تردا نژدو ورځو پوری چې به هر چیری پر ادبیاتو خبرې کېدې یا به په خاص ډول د شعر خصوصیات بیانېدل نو د عروضي او غیر عروضي شعرونو

په توپیر ئې پر هغو بندېزونه لګول او نو ځکه زموږ شاعر مجبوروو چې ووائي: که پدې قافیه کې کمبود راغی نو چې د

پلار سر په لاس راشي هم به دریغ نه پرکوی.

دا نو که دلته وه که په بل ځای کې د شعر انحطاط دوره ئې باید وبولو ځکه په شعر چې دونه لفظي تعقیدات وارد سي (د بشتی ۳ مخکی)

## ستا نغمه

د«نوروادب»

که ته زما سره خبری ونه کړې، نو زه به خپل زړه، ستا په خاموشۍ ډك کړم، او هغه به وزغمم؛ زه به پټه خوله شم او د شپې په څېر به د نجومي وینوالي په حالت کی په صبر او استقبال په کړه غاړه ستا انتظار باسم.

ورځ هرومرو راتلونکی ده، تیاره به ورکه شی او ستا آواز به آسمانو نه وچوی، د زرینو چینو په شان به وبهیږی.

هغه وخت به ستا خبری زما د چنچڼو له ځالیو څخه د نغمی په توګه هر لورته والوزی، او ستا نغمه به زما په بیابانی ځوټ کی ګل غوندی وټوکیږی او غوټۍ به ئې ولو یږی.



### دمینی انتظار

زه یوازی مینی ته منتظریم چی د هرڅه په پای کی خپل ځان دهغی لاسوته وسپارم، همدا سبب دی چی دومره ناوخته شو او همدا وجه ده چی زه ددومره متروکاتو مجرم یم.

وګړی خپل قواعد او قوانین راوړی چی ما پری پابند کړی خو زه تل ځینی ډډه کوم داځکه چی زه مینی ته منتظریم چی دهرڅه په پای کی خپل ځان دهغی لاسوته وسپارم.

وګړی پرما الزام لګوی، ما بی پروا بولی، زه هیڅ شك نه لرم چی دوی رښتیا وایی.

د بازار ورځ ختمه شوه او دیوه مشغول سړی کار پای ته ورسید هغه وګړی چی همداسی د فضولی بلنی دپاره راغلی ؤ په خشم بیرته ولاړل.

هو! زه صرف مینی ته منتظریم چی د هرڅه په پای کی خپل ځان دهغی لاسوته وسپارم.

«ټاګور»

---

د ۲۸ مخ پاته برخه

هغه د معنی څخه خالی کیږی او دا له معنی څخه خالی والی ئې ددې باعث ګرزی چی نفسانی لذت کله ځینی باروی.

د پورتنی تحلیل او څېړنی په نتیجه کی نو موږ د ملتن دا دوهم اصل هم د ښه او بد شعر ترمنځ معیار کولای شو چی یو ښه شعر به د نفسانی لذاتو څخه خارج نه وی.

«پاته لری»

## تصحیح

دمجلی د۹۳ ګڼی د ۸مخ د ماخذ په برخه کی دی حدودالعاله په حدودالعالم. زین الاخبار ګردیز په زین الاخبار ګردیزی او سا ئکلو پیدیا دی په انسا ئیکلو پیدیای بریتانیکا تصحیح شی.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(JULY) 1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال څلورمه ګڼه

کالنۍ بیه

په کندهار کی [۴۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کی [۳۳] د

په د باندنیو هیوادو کی یو ډالر

پر له پسی ګڼه ۹۴

د کندهار دولتي مطبعه